# متلونه

تدوین او سریزه

د

پوهیالی بریالی باجوړی

۱۳۶٤




# متلونه

دمرحوم خاطر اپریدی دشعرونو مجموعه

د

بریالی باجوړی

تدوین او سریزه

خپرونکی

د قومونو او قبایلو وزارت

دنشراتو او تبلیغاتو ریاست

۱۳۶۴

# خیبر په پښتو ادب کې

د خیبر ښکلې او تاریخي دره د پښتنو نومیالیو د مبارزو او سرښندنو د تاریخ پولوي تاتوبی دی .

د خیبر دره د لرغونو زمانو راهیسې د تاریخي او اقتصادي اهمیت لرونکې ده او د نورو غرونو او درو په پرتله یې نوم په هر ځای کې مشهور دی .

د خیبر دره همیشه د کاروانونو د تللو راتللو لار، د پښتون قام د لښکرو سنګر او د یرغلګرو سره د جګړې د تاوده ډګر حیثیت لري .

د پیر روښان د نهضت سنګر د دریاخان اپریدي او ایمل خان مومند د شوګیرو او تکبیرو مورچه ، د ملتان خان غازي او عجب خان د غورزنګونو سیمه د مغلو او پرنګیانو هډوپناکیدو هدیره همدغه د خیبر دره ده چې هم ترې یې د خپو تاریخي پیښو

ترجمه نی کوی کوم چی زموږ د تاریخ ځلانده بابونه دي او د همدغه تاریخي اهمیت په درلودلو سره د خیبر کلمه د پښتو په ادب کې رانوته او په پښتو شعر و شاعرۍ کی د پښتنو د مبارزو کارنامواو ویاړنو په مفهوم وکارول شوه چی په دې توګه د پښتو ادبیاتو په منځنۍ دوره کی د — خوشحال خان خټک نه رانیولی بیا تر اوسنۍ د ورې پورې د استعمال رواج لري ·

خوشحال خان خټک په خپلو شعرونو کی دغه کلمه څو څو ځایه کارولی ده خو په یوه قصیده کی د خیبر د درې یاد داسی کوي :

د خیبر دره یی سره کړله په وینو
په کړه په یی هم روان کړه دندوکار

چی بیا دغه کلمه دیو مضبوط سنګر په مانا په پښتو غزل کی هم رانوته او استعمال یی په مختلفو اړخونو کی زیات شو ·

علی خان د پښتو ژبی تکړه شاعر یی پدې ډول یادوي :

د کوڅی ګوټ به دي پرې نه ږدمه رقیب ته
اپریدی یمه مغول ته خیبر نیسم

او که له منځنۍ دورې راتیر شو نو د اوسنۍ دورې شاعرانو هم د دغې تاریخي درې اهمیت له نظره نه دی غورزولی او پخپلو

شعرونو کی ورته په زیات اهمیت قایل دی چی په ډیر ویاړ یي یادوي.
د پښتو ژبی نامتو او ژبی شاعر اجمل خټک یی داډول یادوي؛

دخیبر دره خو لا رد تلو را تلو ده
په کابل او پیښور کی افغان یو دی

که دخیبر د درې تاریخی اهمیت له ډیری لرغونی زمانی سره اړخ لګوي او د پښتون اولس د اتلو جنګیالیو او تورزنو میړنو زانګو ده نو له بله پلوه د غه تاریخی خیبر پخپله شګلنه خاوره او وچو سپېرو تږو کی وخت په وخت داسی د ادب نومیالی زیږ ولی چی د پښتو ادب به پرې د تل لپاره ویاړي.
دخیبر په د غو وچو تږو کی د پښتو ژبی د شاعرانو پیدا کیدل په خپله د خیبر د درې هغه تاریخی اهمیت دی چی خپل هر بچی ته د پلرونو او نیکونو د مبارزو، سربښندنو او میړانې د هندارې مثال لري چی بیا د غه شاعران ورځ په ورځ د ومره زیات شول چی یوه لویه ادبی حلقه یی جوړه کړه.
که په اتلسمه پیړۍ کی د پښتو ژبی د وه لوی ادبی مرکزونه کندهار او پېښور یادوو نو د خیبر ادبی حلقه چی ځانګړی خصوصیات لري هم د یادولو وړ ده چی د ډیرو پخواو تکړه شاعرانو لکه قلندر –

اپریدی ، یونس خیبری ، میرا اپریدی ۰۰۰ اونورو زیاتو شاعرانو تاتوبی و اودغه درې واړه خلقي یوله بله سره په تماس کې وې اود پښتو ژبې د ادب په خدمت کې لګیا وې چې د دغه تماسونو په هکله د پټې خزانې د مولف محمد هوتک هغه خبرې راوړم چې د یونس خیبري په باره کې کړې دي اود هغه د پېژند-ګلوۍ په هکله داسې وايي :

„ذکر د شاعر شیوابیان محمد یونس خان : هسې روایت کا زما تربور رحمت هوتک چې په سنه (۱۱۳۰ هـ) پېښور ته تللی وم او هلته په خیبر کې محمد یونس خان شاعر شیوابیان ولید او د ده اشعار مې سماع کړل “ (۱)

نو موږ ویلې شو چې د خیبر دره لا هغه وخت د شعر او ادب زانګو وه اودغه د شعر و شاعرۍ سلسله په خیبر کې له نیکه مرغه تر اوسه جاري ده ۰

خو په اوسنۍ دوره کې چې پښتو غزل کوم معراج ته رسیدلی هغه د معاصر غزل د پلار امیر حمزه خان شینواري برکت دی ۰

حمزه صاحب نه دا چې یوازې په خیبر کې د پښتو غزل لوړ معراج ته ورساوه او بې شمیره غزل بول شاعران یې ورونل

بلکې د ټولې پښتونخوا د غزل بولو شاعرانو توجه یې ځانته راوګرځوله
او د استاد حمزه په پله روان شول .
حمزه صاحب د پښتو غزل جامه په نازک خیالۍ او نادرو تشبیهاتو
ښکلې کړه او په محتوا کې د پښتون اولس پښتنې عناصر او کړه وړه
ور داخل کړل په پښتو غزل کې د ژوندانه مسایل ور ځای کړل
او د خوند ، رنګ او مقصد په یو ځای کېدو سره یې پښتو غزل
د پخوالې پوړۍ ته ورساوه نو ځکه خو وایې چې :

ستا په اننګو کې د حمزه د وینې سره دی
ته شوې د پښتو غزله ځوانه زه دی بابا کړمه

نن ورځ په ټول پښتون غزل کې د حمزه د غزل ځانګړتیاوې
وینو او دا به د پښتون غزل نیک مرغي وي چې د غزل د کاروان
په سر کې لکه د حمزه صاحب غوندې سالار لري .

حق به ادا نن د غزل نه کړي
پل چې هر څوک زما په پل نه کړي

حمزه صاحب د پښتو د معاصر غزل په میدان کې ډېر پلویان
پیدا کړل لکه لعل زاده ناظر ، خاطر افریدی ، خیبر افریدی
ساحر ، باصر شینواری ، سیماب شینواری ، جوهر شینواری

عبدالقیوم کوثر، مراد شینواری، اکرم خان فاروق، احسان ظهیر، یار حسین سائل او داسې نور چې هر یو پخپلو غزلو د پښتو غزل رنګین کړ او د حمزه صاحب په غه نوې او ځانګړې لار روان شول یو پښتون محقق د حمزه صاحب په باب لیکي:

«حمزه صاحب ځانته رنګ دی، خپل اندازي دي نوي علامات، استعارات او کنایات یې متعارف کړي دي د زوړ روایت نه یې خنګ کړي دی د دی دور نماینده شاعر دی د وخت نه مخکې پیدا دی» (٢)

همدغه وجه ده چې نن که په خاطر خبرې کو وا و یا کوم بل شاعر باندې، نو د حمزه صاحب ذکر به هر و مرو کوو ځکه چې په دغه لار کې هر غزل بول شاعر یا د حمزه صاحب نه او یا به د هغه له کوم شاګرد نه متاثر وي او دغه سلسله په مخ روانه ده وړاندې ځي او نوې نوې غوټۍ سپړل کیږي حمزه صاحب د غزل د دغه سپرلي په باب وايي:

حمزه سپرلی لا د خیبر نه نه ځي
ډېرې غوټۍ په سپړېدو بنسکاري

لکه څنګه مخکې موږ چې وویل د خیبر د کلمې استعمال په پښتو ادب کي

رواج شو او هر شاعر یا په نظم او یا په غزل کی د دغی تاریخی (دری) یاد
وکړ چی دلته د امیر محمد ساغر خو بیتونه را وړو او گورو چی نوموړی
شاعر د خیبر دری ته په کوم اهمیت قایل دی ۰

په دی توره سکو غرونو کی خیبره
ستا د نوم په دی حرفونو کی خیبره
ستا د لار په کږ لیچونو کی خیبره
ستا په خاورو او گردونو کی خیبره
د قومونو تقدیرونه پریشان دی
د تاریخ څلند بابونه گواهان دی

خیبر افریدی یی په دی ډول یادوي :

خانده زلزلی په خیبر راوله
وی خو تندرونه په بریښنا پوری

او مصری خان خاطر په څو مره ښکلی ژبه او نوی خیال یادونه
کوی :

خاطره یاردی په خیبر کی اوسی
تو له دره له سپیلنو ډکه شه

داد نمونې په توگه د خیبر د کلی لنډه یادونه وه د څو تنو په

شعرونو کې او که نه د خیبر په باب د شعر یو مکمل کتاب شته
چې هر شاعر یکې د خیبر په باب مکمل شعرونه ویلي دي.

# خاطر او دهغه شعر :

د خاطر رنگین غزل ته حیرانیږم
گنې خړ خیبر کې څه دي بې له خاورو

مصري خان خاطر د اکبرخان زوی په قام اپریدی
زخه خیل او د پښتو ژبې د نامتو اولسي شاعر خسرو اپریدي
خوریې دی. په ۱۹۲۹ع کال کې دنیا ته راغی.
خاطر لا د غیږ یو ماشوم و چې د پلار او مور سیوری
یې له سره کم شو او دوه دژوند تر اژیدي پیل شوه.
نیا نیکه یې هم د عمر د یره برخه خوړلې وه او په آخر عمر وو
خود خپل یتیم لمسی پالنه او روزنه یې په ښه شان وکړه.
خو کله چې لږ رالوی شو نو بیا یې د نیا نیکه لاس ته کیناستل
ښه ونه گڼل او د یار لسو کالو به وو چې خواری مزدوري
یې شروع کړه.
مراد شینواری د خاطر د شاعرۍ د پیل په باب وایي :
په ۱۹۴۹ع کې باصر په لواړگي کې د چایو دکان کولو د ا

دکان دخیبرد شاعرانو د ناستی پاستی مستقل مسکن وو.
خاطر هم دې دکان نه څو پیښی راوکړې داهم د دغه
مجلس تاثیر وچې څه موده پس ده هم په غزل ویلو
گوتی پورې کړې .» (۳)

دخاطر سره په ادبی دنیا کی د پښتو ژبې نامتو غزل بول
شاعر لعل زاده ناظر چې ورو سته له حمزه شینواری
د وهم استاد دی ډیر زیار گاللی ، دشعر ونو اصلاح
کولو سره سره یی هغه ته لیک لوست هم وښوده .
اوداځکه چې ناظر صاحب په خاطر کی ډیر زیات غزلیز
استعداد لیده او دهغه را تلونکی ورته ر وښانه او
ځلانده ښکاریده اوناظر صاحب دغه پیش گویی
څه هسی نه وه او تولې پښتونخوا ته پته ولگیده چې خاطر
د غزل په دنیا کې اوچت او ځانگړې مقام وموند او د
هرچا په خوله بیا د ده غزل وو .

د ناظر صاحب د زیات زیار نتیجه داشوه چې خاطر
ډیر زر هغه منزل ته ورسید چې ډیرگلونه یی غوښتل
خیبراپریدی د رخیبر انگازی ، نومی کتاب کی په دې

هکله وایی :

„ دچاملاصاحب نه یې حروف تهجي زده کړي وو خو

لیک اولوست ناظر بابا ور ښودلو ..... تخلص هم

ورته ناظر غوره کړی وو .

ناظر بابا دخاطر اپریدی سره ډیره خواري کړې وه ،

دخاطر اپریدی دخولې نه ناظر بابا سدوخیله او زخه-

خیله ژبه پریکړه اوددې په ځای یې ورته شاعره ،

ژبه وره ، ژبه ولګوله . " (٤) ،

مصری خان خاطر رومبی دخیبر رایفلز په بڼ کی

مالیار وخو وایې چې څه موده ور وسته یې پدغه مالیار توب

کی هم زړه تنګ شو اودغه کاریې پریښود . بیایې ګنډې

شروع کړې خو په هغې کی هم څه ګذاره ونشوه او د

خیبر اپریدی په قول په ور ځوکی یوه ورځ خاطر اپریدی

دکابل نه څه دسینګار سامان دتجارت په غرض پیښور ته راوړو

په پیښور کی هم هغه سامان سینګار دده دنرخنامې

نه ارزان وو " (٥) ،

پدې توګه خاطر په دغه کارکی هم تاوانی شو او دژوند

د پرې تودې سړې يې وليدې ، له زياتو ستونزو سره لاس په ګريوان و او غربت خوږي هميشنی ملګری و .

همدغه بې وزلي وه چې خاطر ته يې ناروغتيا ور په برخه کړه د بې وزلۍ ناروغتيا د غريبانو ناروغي يعنې نزې رنځ چې د خاطر غزل خيز خاطر يې سوری سوری کړ . خو خاطر د ټينګې ارادې او مضبوط همت خاوند و د ژوندانه هرې ستونزې ته لکه غر ولاړ و ، غربت ، ناروغي او عشق د خاطر په اشعارو کې دومره سوز پيدا کړ چې په زړونو خولې لګوي او په ذهنونو پاچاهي کوي ، په هر شعر کې دومره درد ونه رانغښتل شوي دي چې هغه به خاطر په خپله وړه سينه کې څنګه ساتل ؟

دا حسرتونه دا غمونه تنګ ګوګل زړه ګيه
له دې خوګوربنه دی هرڅوک ه د تيارونه ډک دی

خو دغه دردونه د خاطر لپاره ډېر خواږه وو او دا هغه مشغولا وه چې خپل ژوند يې پرې تيرولو او په خپلو اشعارو

کی داسی خوازه ستایل چی گوندی دی
په دغودر دوبومین دی .

وستایه دپردیار تراخه خاطره
چې په کتاب کی دی خوازه پاتی شی

خاطر په ونه تیت و ، رنګ یې زیړ ژیبنلی و ، شیره یې د زمانی ناخوالو داسی زبیښلی او وچه کړی وه چې وینه ورکی هډو پاتی نه وه خو په ۱۹۷۰ع کال داګست په دوه ویشتمه نیټه یی چې په سوری تمر کی کوم څاڅکی وینه پاتی وه هغه یې هم راوګرزوله او د تل لپاره یې ستر ګی پټی شوې .

هیڅ خاطر دې خزان ونه کړه وخاطره
څنګه خره او بې ګله دنیا بنسکاري

په رښتیا هم خاطر د پښتو ژبې د غزل بولو شاعرانو په لړه کی هغه نادره مرغلره وه چې ایرو کی پټه وه اوله جوتید و وړاندې د تل لپاره پټه شوه خو بیا هم د خاطر د شاعری غږ یوازی د خیبر په ښکلی او تاریخی دره کی پاتی نه شو ، په دېرلږ وخت کی راووت ، خور شو او د پښتونخواهرې سیمی ته یی ځان ورساوه ، ده چاپه زړه کی ځای ونیو

او دهرچا په خوله د خاطر غزل و.

ښکلي به سر ټيټ کړي ياره ستا په تصور کي
د پېر خاطره ستاد غزلونو په سر ونو

د خيبر په وچو تړو او سپيرو لمنو کي د خاطر د غزل رنګيني د هغه د هميشني درد او بې وزلۍ وجه وه چي د ده او د ده د نور وطنوالو لپاره يې خپل ګران وطن اغزي اغزي کړي واو همدغه مفهوم خاطر په يو ښکلي او نوي بڼه کي داسي ادا کوي.

خو ښه مي ستا په بڼو غشوده ويشتنه د زړه
ګني وطن خو هسي ياره دا غزونه ډک دي

د خاطر د غزل ژبه دومره خوږه ده چي که چيري ژوند ور سره ملګرتيا کړي واى نو ننه به د غزل په ميدان کي يولوى استاد او د ځانګړى لاري سالار و. د خاطر غزل ساده او روان دى خو په ساده توب کي دومره خوږ او داسي نادر و خيالاتو او تشبيهاتو پيونکى دي چي د نورو شاعرانو ورته هڅه و پام هم نه و. څنګه چي د خاطر ساده ژوند له دردونو او کړاونو ډک و نو هماغسي غزل هم ساده خوله سوز او درد نه ډک دي.

دخیبر د سیمې ترسیم دخپل دردیدلي ژوند کړاو د مینې ناخوالي دغزل په خوږ او رنګینو الفاظو کې راوړل د خاطر د شاعرۍ ځانګړې لار ده .

د خاطر د شاعرۍ مواد دخپل پښتون ماحول کړه وړه دي په خپل چاپیریال کې چې څه ویني او دی ترې متاثر کیږي هغه په غزل کې راخلي خو په ساده بڼه او د شعري ښکلا په چوکاټ کې یې په نوې نازک خیالۍ او په خوږه او روانه ژبه وړاندې کوي او دا د خاطر د شاعرۍ ځانګړې لار ده .

مرا د شینواري د خاطر د شاعرۍ په هکله وايي :

"خاطر لکه څنګه چې په خپله ... او مختصر دی هغه شان د ده فني چاپیرچل ډېر ورکوټی ولې ډېر رنګین دی ځنې ځنې احساسات او جذبات موږ هنګامي او فروعي ګڼو او د غزل په احاطه کې یې د ځایولو وړ نه ګڼو ولې خاطر هم دغه کیفیات د غزل روح ګڼي هغه ته د احساس او جذبې معمولي شان ښکالو هم د تغزل نغمه ښکاري حالانکه هغه د مجموعي نغمې یوه منفرده او ځان ته پرده وي خو خاطر په خپل خوږ بندش او ساده اسلوب کې معمولي کیفیت هم داسې

احاطه کوي چې موږ په یوه پرده کې هم د مجموعي نغمې
تول زیر و بم په وضاحت سره اورېدی شو . . . . . . .
چې څه وینې څه محسوس کوې هغه وایي او لیکي هم دغه
ساده ګي د خاطر د شاعرۍ ځان ده او هم دغه یې د مقبولیت
وجه » ،٦،
خوله د غو ځانګړتیاو سره سره هغه څه چې د خاطر په شاعرۍ
کې شته هغه د موسیقۍ سره ددې د غزلو هم اهنګتوب دی
که وو وایو چې د غزل ویل په پښتو موسیقۍ کې له کوم وخت نه
زیات رواج او عام شو نو هغه د خاطر غزلې وي چې د
پښتون اولس یې په موسیقۍ کې له غزل سره اشنا کړ او پښتو
غزل په موسیقۍ کې لار پیدا کړه او هم دغه د خاطر د غزلو
د عام مقبولیت او شهرت وجه وه چې نن ورځ په ټولـــه
پښتونخوا کې د لویو او وړو او په ځانګړې توګه د پښتـنـو
سندر غاړو په خوله د خاطر غزل دی .
د خاطر د شاعرۍ د دغې ځانګړتیا په هکله فضل الرحمن صاحب
د مردان وایي „ د خاطر د موسیقۍ سره د ډېر لګاو وو ځکه دا
خصوصیت د هغه په غزلو کې بنکاره دی هغه دداسې بحرونو

انتخاب کړی دی چې پدې کې ترنم زیات وي د ده قافیې شگفته وي ، خاطر اپریدی په غزل لیکلو کې ځانته رنګ پیدا کړی دی ، مختصر بحرونه ، وحدت خیال او موسیقي دده د غزلو خصوصیات دی » ۷،

نو پدې توګه ویلی شو چې د خاطر د غزلو برکت وچې په پښتو موسیقۍ کې غزل رواج شو او هم دغه وجه وه چې غزل په عوامو کې هم مروج شو او عوامو له غزل سره مینه پیدا کړه او نن ورځ په پښتو موسیقۍ کې د غزل برخه ډېره ده او پدی تولو کې له هر چانه د خاطر برخه زیاته ده .

راج ولی شاه خټک پدې هکله وایی « زما په خیال د خاطر نه وړاندې د پښتو اکثریت د عوامی ادب ذوق خو لرلو ولی سوچه ادبی ذوق د ډېرو کمو خلکو وو غزل د خاطر نه مخکی په پښتو عوامو کې دومره مقبول نه وو او غزل ته به اکثرو عوامو د پښتو موسیقۍ هندوستانی لوبې وې ... خاطر په هغه شاعرانو کې یو روڼ مقام لری چا چې پښتنې موسیقۍ کې غزل ته یو مقام او رنګ ورکړ وا و هم په عوامی ذوق کې یې غزل ور د ننه کړو . » ۸،

رښتیا هم خاطر په خپل غزل پښتو موسیقي نوره هم خوندوره کړه او د موسیقي داسي مجلس به نه وي چې هلته دي د خاطر او یا بل پښتون شاعر غزل له سازسره ونه ویل شي.

د خاطر په اشعارو کي چې څه شی زیات تر ستر ګو کیږي هغه د ده ځانګړی عشق او بل د ده د ښکلي او تاریخي وطن خیبر یادونه ده که څه هم دي زیات په خپلو اشعارو کي له خپلي مینی نه غږیږي او ځای په ځای د خپل یار ښکلا ستایي او له هجران نه یې فریاد و نه باسي خو خپل تاریخي وطن خیبر هم د خیبر د نورو شاعرانو په پر تله ډیر یاد وي او داسي بریښي چې د دغي تاریخي دړې تاثیرات پده باندي دومره زیات دي چې د یار سره د میني په راز و نیاز کي یې هم له یاده نه باسي. د خیبر ښکلي دره د یار د نظر ماتي لپاره په سپیلنو د کیدل غواړي او په څو مره ساده او خوږو الفاظو کي دغه نادر خیال د شعر په قالب کي ځایوي.

خاطره یار دي په خیبر کي اوسي

تو له دره له سپیلنو د که شه

او چې تکه خپل محبوب تا نه رسیږي تو له کړا و نه ژړ

انتظار باسي او ترهغه او ښکي تو یوي چې دخپل اشنا سره وصل شي لکه دخیبر او سیدونکي چې دخپل فصل لپاره ـ بارانونو انتظار باسي دغه ساده او ښکلي تشبیه دده دخپل ماحول یو څرګند حقیقت دی دخپلو او ښکو سره ښه ښه تشبیه کوي ۰

څو چې خدای راکړي نه وي نور به ژاړم
دخیبر فصلونه تل په بارانو شي

خو له دې موضوع سره سره دخاطر په اشعارو کي پښتو او پښتونواله پښتني روایت یو په یو ښکاري چې دخیبر دغزل ښکلي او په زړه پوري محتوا جوړوي او دړومبي ځل لپاره دپښتو ژبي دمعاصر غزل پلار استاد حمزه دغه لاره هواره کړه او بیا دخیبر او څینو نورو سیمو شاعرانو دغه لار ونیوله ، خاطر هم له دغې موضوع نه بې تاثیره نه دی پاتي شوی او په غزلو کي پښتني عناصر جوت ښکاري ۰

کړیږي هر څوک سره ضد نیولي
ای زما میني دپښتو ډکه شه

همدارنګه دپښتون اولس دمیلمه پالنې دغه تاریخي

عنعنه په څه ښه ډول بیانوي:

خپله غمه د یار غم مې لږ میلمه دی
تا به وکړمه وار و کړه که دې وار شی

او په دې بل بیت کې:

چې د زړه کور له دې راشی پروانشته
ای خاطره خاطر تل د میلمنو شی

خاطر د خپل چاپیریال د نابرابریو نه هم بې تاثیره نه دی پاتی شوی او په خپلو شعرونو کی کله کله د غه حالت ته هم گوته نیسی او وایی:

د وخت د گذارونو می داغونه نه جوړیږی
زما سره سیرلیه ستا گلونه نه جوړیږی

یا:
خوار زه تر اسه شو د خوبونو نامه پاتی ده
د بدو شپو دی او د ښو هسی نامه پاتی ده

دعشق اومینی موضوع چې په پښتو شاعرۍ کې له لرغونو زمانو راهیسې راروانه ده اوتر اوسنۍ دورې پورې رارسي نه زړیدونکی اوهمیشنۍ موضوع ده چې دهر شاعر په اشعاروکې شته خو دخاطر په اشعاروکې دغه خواږه ډېره زړه ده او په دې موضوع کې هغه داسې مرغلرې پيیلي چې دده دلوی مهارت ښکارندوی کوي:

دریغه چې د استاد اشنګو خوله هم زه وای

پرخې ته چې ګورم دګلونو په سرونه

لکه څنګه چې مخکې یادونه وشوه چې له خاطر سره ډیر غمونه ملګري وو لکه دناروغی غم او دعشق غم، خو په دې ټولو غمونو کې هغه ته دعشق غم خوږ دی چې دژوند دټیرولو یوازنۍ مشغولا همدغه غم دی او په هیڅ وجه یې له لاسه نه ورکوي.

غمونه داشنا زه اوس په هیڅ نه هیروم

ای غمه ددنیا که هیرولوله راځې

اوچې کله یې دغه غمونه ډیرشي نو دیار ټول تراخه دځپل کتاب خوازه ګڼي او په رښتیا هم دغوتر خود خاطر غزلی دومره خوږې کړې چې په بیا بیا لوستلو یې لوستونکی نه

مرېنې او د يار د تر خو ستايل يو نوی خيال دی .

وستايه د هر ديار تر اخه خاطره
چې په کتاب کی دې خوانزه پاتی شی

خو خاطر د غه تر اخه غمونه په خندا تيرول په خوله يې څه نه ويل او پټ پټ يې ګوګل خوړ . خاطر په مزاحيه شعرونو کی هم لوی لاس درلود او د خيبر اپريدی سره څينې وختونه د مزاحيه شعرونو مشاعرې کولې چې خيبر اپريدی په دی هکله وايی :

« د خاطر په هغه وچه سوی لوی سينه کی د ېر لوی مزاحيه خيز خاطر درزيد وکه خاطر چرې مزاحيه ليکل کولی نو ادب ته به يې له دې نه زياته صحت منده او مفرح القلب سرمايه بخښلې وه » ۹،

خو له بده مرغه د خاطر کوم مزاحيه شعر نه دی پاتی او که پاتی وې نو زموږ لاس ته نه دی راغلی .

د خاطر شعر ساده او روان دی مغلق او پيچلی مسائيل نه استعمالوې د خپل پښتون چاپيريال نه الهام اخلی او هغه څه چې دی ترې متاثر کيږی په خپل شعر کې را نغاړی او

په خوږه ژبه يې خپلو عوامو ته بيانوي ، ښکلي ښکلي تشبيه گانې ، نازک خيالي او نوي نوي خيالونه د موسيقي سره هم آهنگ وې د خاطر د شعر هغه گانه ده چې دده شعر يې له نورو نه جدا کړې دی او د لوستونکو او اوريدونکو په ذهنونو کې ځای نيولی دی .

لکه څنگه چې مخکې يادونه وشوه له خاطر سره په ادبي دنيا کې ناظر صاحب ډير زيار گاللی نو موږ په وياړ سره ويلی شو چې د ناظر صاحب زيار او زحمت داسې ځای نيولی چې د پښتو ادب به يې تل ياد ساتي او دا خبره سمه ده چې اوس هم ويل کيږي " چې ناظر نه وای خاطر به نه وای "

ناظر صاحب د خاطر لپاره د خاطر د تخلص غوره کول د هغه ژور نظر او دور اندیشی پر اساس وچې هغه ورکې پټ - استعدادونه ليدل چې لا هغه وخت نه وو ښکاره شوي او وروسته را ښکاره شو دغه تخلص له هغه سره لکه ښه اوگټه ولگيد او په خپلو غزلو کې داسې استعمال کړ چې هيڅ شاعر خپل تخلص په داسې مترادفاتو سره او په داسې کيفيت نه و استعمال کړي لکه خاطر چې پرې څومره د غزل

مقطع بنکلی کړی ده. لکه په دې لاندې بیتونو کې:

زما خاطر خاطر دې اور کې وسو
اوس یې لوګی په اسویلو کې وینم

یا:

دا زه خاطر ستا د خاطر د پاره
په خپل خاطر د غم چپی تیروم

خاطر اپریدی د پښتو ژبې په معاصرو شاعرانو کې د رښند اولار زښت د ک مقام ته رلود هر پښتو ژبی شاعر ورته په در نه سترګه کتل او د شاعرانو په زړونو کې هم ځای نیولی و.

د پښتو ژبې نامتو معاصر شاعر رحمت شاه سایل د خپلو اشعارو د دوهمه مجموعه چې (د لمبو په سوری) تر نامه لاندې چاپ شوې د شمس القمر اندیش، اکرام الله ګران او خاطر اپریدی په نوم کړې ده او د خاطر اپریدی په هکله وایی:

«خاطر اپریدی د چا غزل چې لکه د لوی خیبر د عظمت په شان په ټول وطن خور دی په مینه او ښایست کې لړلی

غزل د لویو ورو نرو ښځو په خوله غزل .

ته به کوڅې د زلفو جوړې کړې
زه به دې شلید لی گریوان څه وکړم (۱۰)

همدا رنگه د پښتو ژبې یو بل خوږ ژبی شاعر عبدالروف زاهد د مردان ، دځوانی مرگ خاطر په مړینه یو شعر ویلی او د هغه د غزل په باب وایی «خاطر اپریدی چاچې د غزل پالنه د زړه په وینو کړې ده» (۱۱)

د عبدالروف زاهد د شعر یو څو بیتونه په لاندې ډول دي :

ای د سحر قاصده لاړ شه د مشرق په طرف
د سبانی ختونکی نمر په مخ څادر واچوه
چې پلوشې یې خورې نشی د تیارو په سیمه
ورته قسم دځوانی مرگ خاطر د سر واچوه
توره تیاره ښه ده رڼا دخوشحالی زیری دی
موږ د نړونو په ماتم کی رڼا نه خوښوو
هره لمحه دی اوس تیریږی د غمونو غیږکی
اوس د زخمونو ښاریه کی سبا نه خوښوو

تور ه وریځ دنی شي خوره دشین اسمان په څهره
موږ ده دید لی یو دستورو رڼا نه خوبښو و
زموږ دغم په سمندر کی دي باد او نه لګي
موږ انتشار په خاموشۍ کی دچا نه خوبښوو

مصري خان خاطر که څه هم مړ دی او د ادب په دنیا کی دده ځای خالی دی خو بیا هم د شاعرانو لپاره د مرګ کلمه نه استعمالیږی ځکه چي هغوي مرګ نه لري بلکی پیړی په پیړی له خپلو خلکو سره په وړاندی ځی او موږ د کلتوري ویاړنو یوه لویه برخه جوړه وي نو ځکه خو موږ وایو چي د پښتو ادب په دنیا کی به د خاطر نوم د تل لپاره ژوندی وي او په دغه لنډه او تنګه موده کی به دده دغه ادبی خدمت ته هر یو پښتون د قدر په سترګه ګوري او د غزل بولو شاعرانو په لړ کی به دده نوم په لومړی کتار کی راځی او دا ځکه چي خاطر د پښتو غزل حق تر خپله وسه ادا کړی او که د غزل په دنیا کی په دې ویاړ سره یادشی نو لږ تر لږه به د خاطر د ادبی خدمت حق ادا شوی وي .

دیوې خبری یادول ضروری ګڼم چي په دغه مجموعه کی موږ

خواره واره اشعار راټول کړی دی چې زیات یې نیم ګړی دی موږ په نظر کی لرو چې د دوهم ځل لپاره د خاطر د غزلو مجموعه په مکمل ډول چاپ کړو نو د ګرانو لوستونکو نه هیله کوو چې له موږ سره په دغه برخه کی مرسته وکړي او د خیبر د دغه نه هیریدونکی او خوږ ژبی شاعر د نه هیرولو په خاطر د هغه خوږې غزلی موږ ته د ابد لپاره خاطر ژوندی وساتی:

ای اشنا چې دې وطن له ته راد ر ومی
خړ خیبر خو دې لیدلی زه به مړیم

بریالی رباجوړی،

## ماخذونه :


۱، پټه خزانه ، محمد هوتک ، دپوهاند حبیبی په تحشیه
اوتعلیق ، کابل ، ۱۳۵٤ کال ، دولتی مطبعه ، ۵۷ مخ .
۲، بهیر ، حمزه شینواری ، ۱۹۸۳ کال ، جدون پریس ، ۷ مخ .
۳، خیبرادب ، مراد شینواری ، ۱۹۵۸ کال ، پیښور ، ۲٦۸ مخ .
٤، دخیبرانګازی ، خیبراپریدی ، ۱۹۸۲ کال ، جمرود ، ۳۰ مخ .
۵، همدا اثر ۳۱ مخ .
٦، خیبرادب ۲٦۹ مخ .
۷، پښتو ، فن وفنکارنمبر ، پښتواکیډیمی پیښور یونیورسټی
میاشتنی مجله ۱۹۷۹ کال ۳۸ مخ .
۸، همدا اثر ۱۷٤ مخ .
۹، دخیبرانګازي ۳۱ مخ .
۱۰، دلمبو په سوری ، رحمت شاه سایل ، حمدیه پریس
پیښور ، کال ۱۹۸۵ ، لومړی مخ .
۱۱، پرخه ، عبدالروف زاهد ، مردان ، ۹۳ مخ .

# نعت

کاشکی بوتی دی دیار د محمد
مامنلی په دیدار د محمد

د دنیا وارہ گلونه به یی هیر شی
که چا ولید و گلزار د محمد

د دنیا ژړا خندا دی پکی نه وی
زه وای شمع په مزار د محمد

دا خبری یی وصال گنه خاطره
بی قرار شی په قرار د محمد

داستاد خولی می فیصله ماته شوه
ځکه د زړه می حوصله ماته شوه

شونډی دی هسی رپیدلی نه وی
په زړه دی بله څه راتله ماته شوه

نور می ساقی څه جرم نه دی کړی
تشه د لاسه می پیاله ماته شوه

ته په عوض کی یی په هر څه غواړی
دا می په برخه وه سپیره ماته شوه

لاس دی بی واکه چی جامونو ته ځی
ماښام خونه دی چی روښانه ماته شوه

خاطره پریږده د دروغو توبی
نوره زما او ستا ناغه ماته شوه

چې اشارې کړې ایثار یږم ولې
چې پښیمان یې تیار یږم ولې

دریغه چې مړ دی دستم نه وای زه
چې نه مړکیږم ازار یږم ولې

په یو ساعت کې مې بیا بیا ژړوې
چې اوس ژړیږم قرار یږم ولې

نور به دې څه وکړي بانه په خاطر
تول دې پرهر کړمه ډاریږم ولې

د ستا په غم کې خوشحالي پټې دي
په دې زندان کې آزادي پټې دي

خاندې چې جوړ مې شول د زړه زخمونه
ایله په وینو یې خولګې پټې دي

د خوږو زلفو لاندې ګوري په چل
په دې ځنګل کې دې هوسې پټې دي

په سرو سرو ګوړم تورو سترګوته دې
چې پکې څه بلا مستي پټې دي

ستا له سینګارنه مې ځواني شه لوګې
د برې په خاورو کې ځواني پټې دي

په کومو سترګو به بیا درځمه
په اشارو کې دې تګې پټې دي

زړه که ته ځې زه لیوني خونه یم
د مخ سره زلفې رسې پټې دي

څه شو په خوله که دې رخصت راکړو
ستا په نظر کې تسلي پټې دي

که ستا په خیال کې مې خاطر شوایږي
خو د امید پکې سپرغۍ پټې دي

عکس د ستا زما د سترگو د زړ ښار نه وځی
د زړه د کوره د بیلتون دیو گذار نه وځی

ای شمع رویه راشه نور دغه ضد ونه مه کړه
چی پی مین دی هره شپه د انتظار نه وځی

د استا کوځی له زړه د روغ ځان په خیال نه وځم
چی تاو را تاو نه شی د ستنی سوم نه تار نه وځی

د ستا د عشق په سمندر کی می ژوندون جوړ دی
چی په ریښتیا خو سمندر وی د انگار نه وځی
شیبی د اوښکو د خاطر پسی ایله زیاتی شوی
ښکاری د استا ځوانی او بز ده شوله بهار نه وځی

زما زړه او سترگی ستا سره پوهیږي
نور به بد کړي چې په دی منځ کی ځائیږي

چې می ووایی اشنا ولی خفه یې
زړه می بنه شي په گوگل کی نه ځائیږی

کړ دی غم په ما انبار شی پروانه شته
دگلو نو لاندی ځانگړ نه ماتیږي

کړ خیر نه راکوی خیر دی بنیری مه کړه
مین زړه می ستا دمینی نه صبریږی

خاطر خومره لوی هیبت ستا درا تلو کړ
لکړ پا نه چې په ونو کی رپیږي .

منا د ښکلی مخ شمع چې مړه شوله
حوره په محفل کې توره شپه شوله

راشه لږه واوره د الفت قــــصه
بس د ه نوره زړه کې مې زړه شـــوله

ډېرې وعدې ښې وې لږې لنډې وې
اوس دې هر یوکال راته وعده شوله

تاچې د خاطر خاطر ونه کـړ لو
ښه شوه ډېره ښه شوه اشنا ښه شوله .

ته چی رقیب ته اشاری کړی دادمل نبنه ده
ته چی داغلی غلی گوری داد غل نبنه ده

کله یقین کړمه په داچی مروری یی له ما
ماته معلومه ستا په سترگو کی دچل نبنه ده

ترچی تپوس له مامدام کوی چی څه لټوی
زه چی دالاس په سینه ږدم دا داول نبنه ده

خاطره تاچی بیگاه خوب کی هجران ولیدلو
یقین می دادی اخری ستا داجل نبنه ده .

څومره چې زړه يږم په ځوانۍ پسې ژړيږم
خدای زده نه پوهيږم چې ساده شوم که پوهيږم

زما د استانه تګ دغسې کله چرته شوی
دومره خو پوهيږم چې قدم اخلم ويريږم

زه يمه خوشحاله ستا په غم کې خفه مه شې
خدای مې پخلا مه کړه چې له تا مروريږم

ځکه ما خاطر درته داوی چې ماهير کړه
پريږده چې بې واړه په هر ځای کې دريادېږم

د یری خوشحالی ښنی نه دي بیا رانه هیریږي
کله کله غم راکوه بیا چې می یادیږي

زه دی یم لوګی پټ هیډی نه شی رانه شمعی
خدایږ ودرناړ په تیار وکی ښه بنکاریږي

ماته د اشنا دوعدی هر یو ځای اشنا دی
ای ورږ یه نظر ته په هیڅ هم نه مریږی

چرته دی تیر شوي د خاطر نه څه په زړه کی
دومره بی پروایی چی په مخه کی تیریږي

ماویل نه به می زړه وچوی خوډ ر دونه دی تیریږي
پرین ده څه کړی تپوسونه خو وختونه دی تیریږی

جوړی تا اراده کړی د ر اتلو زما په لور ي
نن می ستر گو ته چی وړاندی مشالونه دی تیریږی

جانانه زه یی زغملی شم کړوی داستاد لاسه
هر څو که ستمونه طوفانونه وی تیریږ ي

ستا دحسن په بهار کی یاره نوری رنگینی شته
د دهر په خاطر باندی غمونه دی تیریږی

زما د امید ونو ورځې شپې وغزیدې
هر څو ستا د منزل که مرحلې وغزیدې

اوس چرته پسې لاړ شم لیونی دی زما یار
هر ځای کې ستا د زلفو زولنې وغزیدې

نمر مخیه اوس دی نمی لاړې ماتې کړې ګړنګې
نظر که ستا د مخ می پلوشې وغزیدې

چاهسې داسې ووې چې خاطر کړو یار پهٔ ولا
پهٔ دې در قیبانو جنازې وغزیدې

ښنه شوله دیره چې انکار دې وکړو
زما د واړه عمر کار دې وکړو

د زړه زخمونه مې بیا هله شمار
که دې د خپلې خندا شمار دې وکړو

خلک چې ښنه ولې ګوري ورته
تا چې مخ پټ کړلو ګذار دې وکړو

زه لا څه نه وایم چې داغ دې په زړه
ته را ته وایې چې دیدار دې وکړو

خاطره زه له تا نه چاوړی یم
وار به دې راشي که لږ وار دې وکړو

څه وشو چې سترګې مې په تاباندې خوږې شوې
بل چاته پورته نه شوې چې د ستا په لور کږې شوې

ګوره داګریوان مې وحشت څنګه تار په تار کړلو
نه شلیږي دا ستا د زلفو څه رنګې حلقې شوې

ماخو به ویل چې دا ستا خوله ډیره اسانه ده
ګرانه شوله څکه دومره خولې چې راپسې شوې

اوس هم ستا د مینې افسانه زما په شونډو ده
نورې افسانې مې په زړګوټي کې ورستې شوې

سترګې د خاطر که ستا په سترګو تیروتلې دي
چاته که وي بدې خو زما په هکله ښې شوې

داستا په سترګو کې به څه پاتې شي
رقیبه یار که مې په خوله پاتې شي

ستړی مزدور سحر وختې پاڅیږي
د شوګیر و مین اوده پاتې شي

یو ځلې نیغ په دې لار تیر شه اشنا
چې دې کابزه وا بزه کاته پاتې شي

افسوس داستا په خیال کې څه بنکارمه
دغه ارمان به مې په زړه پاتې شي

اوستا په دیر دیار ترا څه خاطره،
چې په کتاب کې دې خوا بزه پاتې شي .

راشه په کوځوکی د جرګو خبری نه شی
چرته چی په مونږ کی د پردو خبری نه شی

ډیرو شپو له راشه چی دیو بل نه خبر شو
یاره په یوه شپه د ټولو شپو خبری نه شی

وایمه د ځان سره چی دا به ورته وایمه
داچی شی اشنا په اسویلو خبری نه شی

ما او تا چی وو ینی دوایه سره یوه شی
چاوی چی په سترګوکی د زړه خبری نه شی

خدای خبر خاطره زه بیا چرته ته بیا چرته
پریږده اوس په تلوکی د راتلو خبری نه شی

ستا د مخ په تصور کې تماشې کړم
باغ د مینې دې د خیال په کې غنچې کړم

ستا د مخ کتاب د زړه په سترګو ګورم
په ځان تیرې ښې او بدې راخوږې کړم

پټ په زړه کې به ساتمه ستا د حسن
زه به اور د خپله لاسه ور پسې کړم

زه خاطر خو یاره ستا ګلي رخسار یم
بې له تا به په خیبر کې څنګه شپې کړم

چې اشنایي ستمګر شي نو به څه کړه
چې زخمي څوک په ځيګر شي نو به څه کړه

چې یې ټول عمر تیر کړی په پالنګ وي
څه چې ځمکه یې بستر شي نو به څه کړه

چې په عمر کې یې غم لید لی نه وي
چې د غم سره یې سر شي نو به څه کړه

زه خاطر خو همیشه د غسې وایم
چې اشنایي مرور شي نو به څه کړه

چې پښېمان نه شې په بیا کې څه دي
پرېږده داوګوره په دا کې څه دي

شمعې دا نن شپې نه سبا جوړه وه
سبا به مړه وي په سبا کې څه دي

زړه مې یې ستړی په توپو کړلو
ګله داستا په دې ګدا کې څه دي

زما په اوښکو کې خندا ده داستا
یاره داستا په دې خندا کې څه دي

ماپه مثال لکه پتنګ وګڼه
ته دې د شمعې غوندې رنګ وګڼه

لکه چې څو مره ستا غمونه ډیر دي
ما ترې توَل په زړګي زنګ وګڼه

څکه بستروی لیونو ته مدام
زړګیه ته ېې په پالنګ وګڼه

که مې نصیب شو لوکوثر دیدن
بیا مې شهید د عشق په ننګ وګڼه

خاطر کچکول د ګدا واخیستلو
اشنا دیدن په ځان قلنګ وګڼه

په ارمان د نادانی شی چی هوښیار شی
خوشحالی او خوب یی ورک شی غم یی کار شی

تخت و تاج د بادشاهی یی په کار نه وي
په ارمان د روغ صورت شی چی بیمار شی

په توبه باندی ډیر بد ښکاری چی زوړ وي
ښکاری ښه چی په ځوانی کی توبه گار شی

لیونی په کاږلگی ور ته خاندي
د هوښیارو زنکدن په یوگذار شی

خپله غمه دیار غم می لړ میلمه دی
تا به وکړمه وار وکړه که لږ وار شی

ته دی خپلی سترگی وگوره چی څه کړ
د خاطر زړه گی به څه رنگی قرار شی

وړاندې به مې داويل چې کاته به شي
اوس چې په ژړوند پوه شوم وايم څه به شي

وايم ستا بڼو ته د زخمي زړه نه
بس دی که وې داسې نو ساړه به شي

ستا د حسن شمع او دا شوق زما
نه يې پرېږدي دواړه سره مړه به شي

نه وم د داسې جدايي نه خبر
ماويل په ساعت کې تله راتله به شي

نن وکړه تپوس چې را ځه څه غواړې
ماويل چې که راشي نو خوا ښه به شي

هر وخت چې ژړا کړې نو خندا به شي
زړه خود خاطر او به او به به شي

دا ستا ظلمونه د زغملو نه دي
زه یې منم خود منلو نه دي

مینه مې زړه غواړي خوراشه لږه
دا شپې د ځان له تیرولو نه دي

تا چې ویلې و په خپله وعده
دغه وعدې د ماتولو نه دي

د بې صبرۍ او ښکې مې راغلې پر مخ
وایې خاطر د وچولو نه دي

ځومره ډیر مې په زړګي باندې چې غم دی
اشنا سود ور باندې نه شي واې کم دی

هغه خاوره مې دارو ده که چا راوړه
په کوم ځای باندې چې ایښې یې قدم دی

زه خو ځکه داسې شومه چې خندل یې
خلقه ما او په جانان کې کوم یو ګرم دی

حکیمانو لره مه درومه خاطره
د یار شونډې دی پرهر لره مرهم دی

اوښکې نه کمېږي چې راماتې شوې
تاچې خندا وکړه نورا زیاتې شوې

څوځله د اوښکو سره دې غلم
د اشنګه جوګې او ننواتې شوې

څو به ګوري ستا سترګې زما سترګې
لري دي وي خیر دی خو که پاتې شوي

تاچې د خاطر سره خه کړي دي
خیر دی اشنا دابې دې ته پاتې شوې

لاخو د یار کور ته سفر پاتی دي
چی لیز نظر مو د بصر پاتی دي

زه او رخصت له تا په کومو ستر گو
لا می د تن د پاسه سر پاتی دي

زار دی د مینی دلمبو ځنی زړه
لا می په مینه کی ځیگر پاتی دی

دانتظار ډیوی چی تته نه شی
اوس خو شپه تیره شوه سحر پاتی دی

ما خو د استا په سر وطن گنهلو
خبر شه اوس را نه خیبر پاتی دی

ته به په زړه کې ماله څه راکوې
که راکوې ماله به زړه راکوې

څه لوی اختر دې دځوانۍ تېر شو
ته به لا سونه ماله نبه راکوې

منې به نه شم ستاله دره ځنې
په دې دې نه یم چې څه نه راکوې

دا خوشحالی به ماله څوک راکوي
چې ټول غمونه راله ته راکوې

ضد دخاطره سره مه کوه
که یو آواز راله په خوله راکوې

د هجران په شپه ډېوه په لاس کې راغله
خدای خبر چې چېرته تله په لاس کې راغله

رقیبان خو دې اوس ټول راله راتیر شي
چې یار راغی نو وسله په لاس کې راغله

چې مې صبر امید دواړه پسې خوړ کړل
چې له ځانه خبریده په لاس کې راغله

چې د سترګو د سرو شونډو او د زلفو
تصور یوه ځیره په لاس کې راغله

چې په تلو کې شوه موسکۍ نو بیا راشي
ای خاطره بس راځه په لاس کې راغله

لور په زړه می نه ځاییږی چی څه وایم
رانه بیامرورېږی چی څه وایم

که څه نه وایم هم راپورې لګی
په دی هم راته قارېږی چی څه وایم

دهر چاپه لوری ځمه داسی وخت دی
بیا می وخت کله تیرېږی چی څه وایم

ډیره بنه پوهیږمه خاطره
خو بس سترګی می شرمیږی چی څه وایم

زه لکه د موم د ستا دیدار ته اوبه کیږم
پر یده چې اوبه شم ستا رخسار ته اوبه کیږم

چې ته شې خوبونه شپې پرې ستورې محفل جوړ کړې
همدا مشغولا شې ستا سینګار ته اوبه کیږم

زه پرې بنه پوهیږم ستا لیدل زما اجل دی
بیا مې هم وار نه شې ستا یو وار ته اوبه کیږم

اوس خاطره ولې خدای په زړه کړم د ومره سخت
بیا به پس له مرګه ستا مزار ته اوبه کیږم

زړه مي چي اشنا ستا د ړ تلونه پاتی کیږي
خود به راته غم د خوشالونه کیږي

دا سپین دیوالونه به سبا وي ټول گواه
دغه تور لوگی چي د ډیوونه پاتی کیږي

ای د بیلتون باده چي په سترگو مي رانشی
سترگي مي د یار له تماشونه پاتی کیږي

زړه لره مي مرهم او سي اوسترگو له کجل
خاوري يې خاطره چي د خپونه پاتی کیږي

شکر دی چې نه ستا د بڼیرې شومه
اوس دې چې اې یاره دکوڅې شومه

زه به په ځان څه وکړم چې راشي ته
وارم دې په طمع کې ذرې شومه

دومره در نزدې یم چې څولړې یم
لړې به شم نور که در نزدې شومه

نن خودې خاطره چې سبا نه وای
پوه دې زه د فکر په وعدې شومه

کله چې په فکر کې دستا شمه
لاړ شمه د ځانه خوبیا راشمه

نوري دي د مینې لاري سمې کړه
خدای خبر چې کومه پلا خطا شمه

عشقه داسې ځای لره دي راوستم
اوس به نه دستانه د دنیا شمه

د پیر غریب نیولی راکتلی دي
لره به خاطر ته په خندا شمه

زړه په دا نه دی چی ناولی مخ دی
چی کوم یی خوبښ شی هغه ښکلی مخ دی

مخونه ډیر دي خودا مخ می خوښ دی
والله په ټولوکی وتلی مخ دی

پریږده چی اوښکی می بهیږی په مخ
دا بی گناه جانان رټلی مخ دی

څه وشو تاکه دیدن بند کړو په ما
خاطر په زړه کی ستاساتلی مخ دی

لږ د نقاب لرې کول زده کړه
زما په لوری سم کتل زده کړه

ای زړه چې سم د اواری ونه چوې
لکه تناکه ترکیدل زده کړه

په جار خندا به رقیبان پوهه کړې
پټ په لمبو کې مسیدل زده کړه

ته ما خاطر ته نصیحت مه کوه
ناصحه مانه پوهیدل زده کړه

چم په چم طلب کړم صنم
لوند مې ګریوان څاڅي مې نم

مینه وفا دې نه شته
په چا پروا دې نه شته
یره د چا دې نه شته

کوه ستم

رنګ مې تک تور صنمه
سوی په اور صنمه
کومه شور صنمه

اوکړه کرم

مینه بهار دې دستا
چمن ګلزار دې دستا
خاطر ماليار دې دستا

د ګل په چم

خوښه دې شوه دله زما داشنامینه
های زړګیه غمګینه
ای زړه ذړی شه خاوړی ایرې شه
ځی می له سترګو د زړګی وینه
های زړګیه غمګینه
راشه که وینی د زړګی وینه
دیار په غم کی چی د وی راځینه
های زړګیه غمګینه
خاطره داشپی تا نه جدا شپی
جوهد وصال شپی دیارځی دې وینه
های زړګیه غمګینه

تیر به دا ستا دحسن وار شی یاره زما
آخر خزان به دې بهار شی یاره زما

چې نه را درومې اشنا تو وعدې څله کوې
هغه پرون دې څه وې چې نن لا بله کوې

سترگې مې بې لتانه دبل په لور نه گورې
بغیر دستا دمخه مخونه نور نه گورې

مرې به کله په دیدار شی یاره زما
آخر خزان به دې بهار شی یاره زما

زه دبل چا دمینې اشنا څه طمعه نه کړم
زه به دا ستا مینه چا سره سمه نه کړم

په دا خاطر دې که اعتبار شی یاره زما
آخر خزان به دې بهار شی یاره زما

ستا چې خوږې زلفې کوڅې ته راتاو شي
زما د زړه غنې رسۍ ته راتاو شي

په خره پره لوپټه کې تاو شه
لکه ویرانه برېبوکې ته راتاو شي

نه به مې بیا کړې لیونی د غرونو
نه به دا ستا سترګې هوسۍ ته راتاو شي

په زړه بودۍ خو به وانه ورېم له تا
نه به خاطر ستا د ځوانۍ ته راتاو شي

چې زړه مې ستا په تور دی په بل تور مې پېرزو نه دی
نظر چې ستا په لور کړم په بل لور مې پېرزو نه دی

ای هجره چې مې وران نه کړې د زړه خونه ويرانه
ارمان په کې د يار دی په بل کور مې پېرزو نه دی

دا نه چې هر بنا يسته بانډی شيدا دی زما زړه
دا ستا په مخ دی سوزی خو په اور مې پېرزو نه دی

چې ستا د محفل څنې يې نه شي څه گذران
دردرو مې به خاطر په پيغور مې پېرزو نه دی

د وخت د ګذارونو می داغونه نه جوړیږي
زما سره سپرلیه ستا ګلونه نه جوړیږي

ته ساته په قدم کی زه تا ته ورم ولاړیمه
زما او ستا په منځ کی پیغورونه نه جوړیږي

زه خو یی اشنا لا د پخوا لیونی وم
د عمر لیونو ته ځنځیرونه نه جوړیږي

راضی شه د یار غمه د دنیا د غم سره
بی کور می دی د زړه پکی برجونه نه جوړیږي

بوټل یی چی وران کړی ستا تصویر اله اشنا
د عمر هغسی زما هغه فکرونه نه جوړیږي

داستاد حسن تماشې واخیستم
لکه لوګي په سر لمبې واخیستم

سبا مې بیا په زولنو ګوره
ځان یې جوړ فکر د کوڅې واخیستم

سم دې دمخ په سبا پوه نه شرمه
که دې د زلفو توري شپې واخیستم

بس یادوم دې نور مې مه تنګوه
چرته مې هیر نه شي غمې واخیستم

خاطره ته او دا دنیا دې پوه شه
زه بس د عشق یوې قصې واخیستم

شوق می ستا د پیرو پیغورونو مره لاړ
زور می شوا وبه د ستمونو سره لاړ

چرته به زما لیونی زړه پری مشغولیږي
ستا د تورو زلفو ځنځیرونو سره لاړ

سترګی می نیولی ستا د مینی په کاروان کی
لاړلو نظر می د ګردونو سره لاړ

چرته داسی یار شته لکه زه په انتظار یم
ستوری د سبا هم د فکرونو سره لاړ

څو به دی بهار د عشق نیولی وی خاطره
ژوند د ځنی هسی د وختونو سره لاړ

ستا منزل منزلونو کې یم
رسید وامیدونو کې یم

ستا
د ا[ل]ر فسار به می هیر نه شی اشنا
دې سودا دې فکرونو کې یم

نه می دنیا نه می عقبا لګیږي
که بهار سرو ګلونو کی یم

زما په زړه کې خوهم ته یې اشنا
زه خاطر دچا زړونو کې یم

تورې سترګې دې اشارې که
سرې شونډې لمبې کــه
زړګیه راته وایه چې کوم طرف ته لاړ شم

کله بانه راته ازغي کـه
پیڅې دګلو اننګي کــه
چې موسکۍ شي سترګې مړې کــه
زړګیه راته وایه چې کوم طرف ته لاړ شم

بیا چې ارمان در سره نه وي
کوه چې څه دي په زړه وي
چې دې ټول خلق تماشې که
زړګیه راته وایه چې کوم طرف ته لاړ شم

دانتظار په تور وشپوکې
وې دا خاطر دې په تیاروکې
اوښکې دې خېل ځان ته ډیوې که
زړګیه راته وایه چې کوم طرف ته لاړ شم

ته چې په مرګ زما رضا یې
ما ته قبوله دلربا یې

ستا رضا ده چې داسې ژړېږم
په عالمو کې داسې ګرځېږم
په محبت مې نا رضا یې
ما ته قبوله دلربا یې

عاشقي پيدا ده جوره داوړه
لږ زما سوي زړه ته ګوره
جور په معنی قيمت بها یې
ما ته قبوله دلربا یې

خاطره ګوره چې داسې حيران يم
محبت کې جوړ ستا بنديوان يم
څه کبر جنه بې رايا یې
ما ته قبوله دلربا یې

باد شومه د عشق د گرځنگو نو په سرونو
پریوتم د لری وطنو نو په سرونو

مات په ما نظر کړه چې سپیر سترګې حق حیران شی
دود می کړه د خپلو محلونو په سرونو

سترګې به زما شی آخر غرقې په ژړا کې
گرځې چې کشتی د گردابونو په سرونو

دریغه چې د استاد انګو خوله هم زه وای
پرخې ته چې گورم د گلونو په سرونو

ځان به خاوری نه کړم غم دیار دی که خو دیر شی
خاوری دی پرتی وی د تختونو په سرونو

بنګلی به سر تیت کړي یار ه ستا په تصور کې
ډیر خاطره ستا د غزلونو په سرونو

ستا د سپینه مخه زار زما زړه گی شه
هم دا ستانه سپیلنی او هم لوگی شه

ستا په ژبه باندې هره ژبه خوند کړی
ای اشنا لا پیښوری یا اپریدی شه

اوس د گل ځنی ته لری شه رقیبه
یا په خپله باندی گل شه یا ازغی شه

زه او ته د چا خندا خوشحالی څه کړو
زه به اوښکی د باران ته پسرلی شه

زه خاطر دی نور خاطر کولی نه شم
ای رقیبه که پوهیږې نو سړی شه

زړه مې که هر څه رانه هر څه غواړي
هيڅ نه دی خبر چې هر څه زړه غواړي

تل وی بی پروا د ګړ نګونو نه
څوک چې خپل منزل ته رسيده غواړي

ای ماشومه زړه : ته را ته څه وايې
هغه رانه غواړې چې مانه غواړي

هر بړ ی د استاد ديدن وړ نه دی
د اخوهم زړه غواړي هم ليمه غواړي

یم ترز لفو پریشان په توره شپه کی
راشه ای ماه تابان په توره شپه کی

دتکرو بی پروایم ستا په عشق کی
لکه بحریم روان په توره شپه کی

په خدا می ستا قسم دی شمع رویه
خوبه کرمه داگویان په توره شپه کی

زه خاطر چی ستا د زلفو نه دارنه کرم
مالیدلی دی ماران په توره شپه کی

په دی دنیا کې هسې شپې تیروم
لکه میلمه یو څو غرمې تیروم

په ما زهیرمه شی خو مخ بنکاره کړه
په زړه د استاد مخ لمبې تیروم

خوشحالی ته کوره چې غم نه لري
زه لیونی یم چې تنگسې تیروم

دا زه خاطر ستا دخاطر د پاره
په خپل خاطر د غم جوپې تیروم

نور به څه یوسی زما په تور وسترګو
زړه دی وړی لا پخوا په تور وسترګو

که پروا کړمه خوږه به دې پروا کړم
نور دې څه کوې پروا د تور وسترګو

پیرې سترګې مې د سترګو په هر لور شوې
کړم دی داسی وار خطا په تور وسترګو

کړې مې سترګې ستا د سترګو قدر دومره
ور به یې نکړم د دنیا په تور وسترګو

زه یې خاطر یې د کجلو سلایې وایې
بنګلولی دی اشنا په تور وسترګو

لوی دریاب دمینی نه شی په واړه زړه
شو مه یاره ستا غوندی په نه زړه

چی په خوله کوی یوه او په زړه بله
دهغه سره به مینه کړی په څه زړه

بیګاه ستا په انتظار کی شمعه رویی
دهر ستوری سره پورته می خاته زړه

سوی رنګ ته می نه ګوری دلبره
مانیولی ستا دحسن په لمبه زړه

بیا یی خوب واړه تو یونه او هیبت شی
دهجران چغی چی وشی په اوده زړه

یو غم نه دی چی یی وکاندی خاطره
دیر غمونه دی کوه یی په ساره زړه

اوس رانه هیڅ نشی خطا ده      د هر څه هر څه اووتمه
گرانه اشنا دا می سزا ده      چې ستا په طمع گرزیدمه
غر په غرنه ورځی ضمه      چی وی ژوندون اخر به راشی
د راته په زړه کی به ساتمه      پرېږده چی مور بنه په جفاشی
د ښکلو مینه بی وفا ده
زه به یی څه د رته ستړمه

تل به په هر چا داسې کیږی      په داسې خلکو چې اعتبار که
د خپله ځانه چې نه خبر یږی      دگرنگو نو به یی گذار که
هیره زما تو له د نیا ده
شام وسحر دی یادومه

زه درنه شنگه هیریدمه      خپلو وعدو نه وشرمیږه
تا چې خندل زه ژړیدمه      د هغو شپو نه وشرمیږه
زما په سترگو کی حیا ده
زه یی په څه د رواړومه

خاطر خومه وای د رکتلی      اوس یې ژوندون اخیستی اوردی
مغه چې تا ورته خندلی      زړه یې د هری خندا تور دی
زما د زړه خوښه ژړا ده
اوس یی زه نه قراروړمه

لکه ګلۍ چې په اغزو کې وینم
داسې مې زړه ستا په ښنو کې وینم

رخسار دې وینم تورو زلفو کې ستا
لکه رڼا چې په تیارو کې وینم

ګلفامه څومره لرې اوسې له ما
زه دې د نم په پلوشو کې وینم

داستا لیدل تیرشوې خوب وو اشنا
اوس به دا خوب په کوموشپو کې وینم

اې د سبا ستر ګې راخیژه په ورو
تل دا اشنا دې په ختو کې وینم

زما خاطر خاطر دې اور کې اوسوو
اوس یې لوګې په اسویلو کې وینم

لکه گلئ د مسید و ړکه شه
بانه راننغ کړه د ازغو ړکه شه

چې ستا خورو زلفوته نیغه نه شوه
زما څنګل د زولنو ړکه شه

که یې هر څو راسره ضد نیولی
خو زما مینې د پښتو ړکه شه

چې مې ژوندون له رنګینو ډک شي
بیا په غُصه شه د نشو ړکه شه

چې تا مې هم ګریوان ته ځیرې ووې
هم ستا کوڅه یې د توتو ړکه شه

بنه دې زړه تش کړه چې بیا بیا نه وایې
فضا زما د اسویلو ړکه شه

بدخواه چې لاس په تندې کین دې در ته
د خیبر ښانکې د اغزو ړکه شه
پښیمانې د زړه نه وباسه ننن
یو ځل دمه د اشارو ړکه شه
خاطره یاردې په خیبر کې اوسی
تول د ږه له سپیلنو ړکه شه

زه د نیا څه کړم چې نمر مخیه یاره تا ووینم
څنګه دنیا ووینم څنګه دنیا ووینم

دستا په مینه کې دخلکو خندنې خوښ یم
خود دخپل عقل نه وزګار لیونی خوښ یم

راسره غم د لیونو شي چې صحرا ووینم

ستاد کاکل په تورو شپو پورې لاشپې څه دي
ستا د مرو شونډو انګو پورې غنچې څه دي

وی تماشې مې د ژړا چې دې خندا ووینم

ګل چې ما خاطر ته یادشې تول جهان ګل شي
د ډېره هجره مې هر یو ګل وچشمان ګل شي

خدای خبر بیا چې زه به ستورې د سبا ووینم

اوس به تول بوټي سره ځان وښيايي    څوک به کلي څوک به ګلان اوښيايي

لالا به هم څيري ګريوان اوښايي    هم به بلبل شور وفغان وښايي

اوس به ښاخونه په رنګونو ډک شي

راغلو پسرلی وارد خزان تير شو

جونه به ولونه د اوربل جوړوي    پکي ځايونه به د ګل جوړوي

سرو سرو غونچو ته به منګل جوړوي    په ائينو کي به کاکل جوړوي

څوکه جهان د ديد نو نو ډک شي

راغلو پسرلی وارد خزان تير شو

ښکلي ځلمي به په شملو کيږدي ګل    اوس خو به جونه په کمڅو کيږدي ګل

د يوارمانو نه به په زړه وکيږدي ګل    څوک به د زړه په پرهر وکيږدي ګل

داسي به زړونه په داغونو ډک شي

راغلو پسرلی وارد خزان تير شو

د ارمانو نه لوی جهان رژوي    زړه په ګوګل کي مي جانان رژوي

د ميني ګل رانه هجران رژوي    نه کړي خاطر د غه بوستان رژوي

د مخ کتاب دي د رازونو ډک شي

راغلو سپرلی وارد خزان تير شو

څکه مې نن په سوزيدو تيرکړ
چې مې پرون په موسيدو تيرکړ

زما خوستا منزل مقصد دی اشنا
زړه مې له ټولو مرحلو تيرکړ

دلسوزي مه کړه تپوس هم مه
ژوند مې عمر په لمبو تيرکړ

زما دا تيرشوي ورځې زما خونه و
ټول مې دا ستا په تلوراتلو تيرکړ

ډار بيا د چا د تورو زلفونه کړم
يوځلې مرګ رابانده دوتيرکړ

لکه د شمعې بېګا ستا په طمع
ټول انتظار مې په سلګو تيرکړ

زه چې سپرلي ته ورخبر نه يمه
ما د ديدن په رنګينو تيرکړ

ژونده د عشق لوړې ژوري څه دي
سر مې له واړ و ګړنګو تيرکړ

اشنا دا ستا د ښکلي مخ په خاطر
ما دا خپل زړه له سر و لمبو تيرکړ

ته به گرځې هسې بنګلې زه به مړیم
چې مې اوس واې لږ لیدلې زه به مړیم

جنازه چې مې دګوره ګوړ ته یوسې
ته به نه یې راوتلې زه به مړیم

خړې خاورې به په ما باندې انبار کړې
هر سړې به دروې غلې زه به مړیم

زه به مړشمه قرارې مرګه ورک شه
سره خاندې به توړ کلې زه به مړیم

رب دپاره یوځل راشه په خندا شه
چې مزار مې شي محلي زه به مړیم

چې په قبر مې تیریږې خداې دپاره
لږ شه ما ته پسنه نیولې زه به مړیم
اې اشنا چې دې وطن له ته رادرومې
خړ خیبر خودې لیدلې زه به مړیم
دکاکل په خطابند دمخ کتاب که
ماخاطر په تا سپارلې زه به مړیم

اشنا می نن لید و تیری وعدی رایادیدي
داوصل که هجران و ؟ چی گیلی رایادیدي

بس وه می ستا منزل ، په زړه کی نور څه واشنا
دانه چی ماته نوری مرحلی رایادیدي

منم چی فراقجن به نور سبا رایادیدي
له ماچی اشنالاړو ماته شپی رایادیدي

که هیرشوی ، نو یادلره چی هیردی نه شی منبه
پخوا می لا په زړه اوسیدی رایادیدي

وم دومره لیونی ستا د پریشانو زلفو زړه
چی چیرته خوبه خاوری بادیدی رایادیدي

زما د زړه گی یادشود مخکینی نظر سره
په هیڅ نه هیریدلی همداسی رایادیدي

دانه چی آهوچشمه اوس یی غته ستایم زه
داستاخماری سترگی لاوړی رایادیدي

بیگاه چی شمع رویه هر څه هیرودخاطر
داستادمحفل بنکلی تماشی رایادیدي

خبر نه وم دي ثواب او دي عذاب ته
خو تصویر وم ستا په ورځو کی محراب ته

ما ویل تل به خوشحالی وی ستا په عشق کی
اوس می نه پریږدی غمونه اشنا خواب ته

ستا د سر وشوندو ارمان خو هله راشی
کله کله چی نظر وکړم گلاب تــــه

یو ذره یی لری نه کړلو د مخ نــــه
فکر یوړم د اشنا په مخ نقاب تـــه

وایی زړه به هم زما داسی تک تور وي
چی خاطر وکړم نظر سوی کباب تــــه

و وایه ټول ستانه قربان څه وکړم
د دی د پاسه نور په ځان څه وکړم

ته خو به کوڅې د زلفو جوړې کړې
نه په دې شلید لی ګریوان څه وکړم

ته خو چاله نه ورځې خو زه راغلم
ستا په دړ کی نوی مهمان څه وکړم

ستا په طمع ځان له پاتی شوی یم
ټول خورانه لاړل یاران څه وکړم

او س خو زه خاطر په څه پوهیږم
تا چی کړمه داسی حیران څه وکړم

چې بنګلې دې وخندېدې شونډې
خود به د سترګو خوبېدې شونډې

دا ته چې لا رې شونډې وهيځ ونه وې
بس که په تا به يا دېدې شونډې

سترګو له زه که قسمونه ورکړم
زړګيه ته ګله پرېږدې شونډې

شول جوابونه د خاطر نه خطا
په کشمکش کې رپېدې شونډې

جگر می شو کباب په لیمواور ولگیدو
په مادی یکتنها که په هر لور ولگیدو

جگر می تش گوگل دی راشه وکره تماشه
دسوو فریادونو تهنگ تکور ولگیدو

لری به شم نور خود وصال په طمع ناست
دستا دگونگروگانو په ماشور ولگیدو

اشناوی دالوگی دی دخاطر داسویلو
رقیب ویل مازدیگر شو چی تنور ولگیدو

پوه شومه په دې چې په کنځل ښکاري
وخانده یو ځل چې په خندل کې ښکلې ښکاري

ستا د تصور په یوه سجونګړه کې اوسیږمه
ته خو را ته وایه په محل کې ښکلې ښکارې

څومره به په باغ کې په غلو وي خپل ځان نه
ګله د اشنا په سره منګل کې ښکلې ښکارې

به په ائین کې ځان لیدلی په څو رنګه وي
ښه د خاطر په هر غزل کې ښکلې ښکارې

دا سی بله شپه به نصیب سره راځی
په عمر که راځی خو د رقیب سره راځی

څو چې په تندی یې د ازل لیکی وینم
دومره زحمتونه د غریب سره راځی

خندیږی او گډیږي سره گلونه د سبا
نغمې چې د بهار د عندلیب سره راځی

نور خلق رغیږی په دارو د طبیبانو
ښاغلی ته مرضونه عندلیب سره راځی

زړګیه تاویل چې دړدونه څه دي
په دې ګوګل کې مې ترکونه څه دي

که ستا منزل زمانه نوړ لرې شي
ګوډ و ړندونه تیندکونه څه دي

که مرور شي پتیدې خونه شي
ماته په غلا غلا دیدنونه څه دي

زړه پر ښو مې ورله څوک یې وینې
وهه وهه د استرګګونه څه دي

د اسخوړي پچارې دخندانو سترګو
دې په خاطر د اپرهرونه څه دي

خوږ خوبود مینی په ترخوکی انتظار دی
ښکلی تماشه په تماشوکی انتظار دی

کله به د استاد حسن شمع را ته بله شی
ګران را ته د زلفو په تیارو کی انتظار دی

ما ویل که نن نه وی سبا له به دی خوښه شی
ډیر می در ته کړی په اسرو کی انتظار دی

لاړی د امید د زړګی ښنی پاڼی می وچی شوی
بیا درته مې‌ولیه په راتلو کی انتظار دی

تا چی د وفا پلو په ما باندی ونه نیوه
ما ته څه د هجر په غرمو کی انتظار دی

ښه ده چی خاطر دی د ومره مخ ته لاکلی وو
ښکلیه ستا د دیدن په سرو لمبو کی انتظار دی

ستا په الفت کې به هوښیار نه شم
ځو چې د عقل نه وزګار نه شم

سور مې د عشق په لیونتوب نه شي
ځو چې رسوا دې په بار بار نه شم

که د منصور غوندې په دار شمه زه
ستا د صفت به توبه ګار نه شم

خاطره داسې ګذار عشق راکړه و
چې بل ګذار به بیدار نه شم

یاد شرابونه نشی وباسه
یا خو توبې زما د خولې اوباسه

دا لنډه تنګه دنیاګۍ ده ربه
زړ مې د ژوند د اوږدې شپې وباسه

یا مې د زړه دردونه مه لټوه
یا دې صحرا ته قافلې وباسه

دا اشنا یاره نور مې مه تنګوه
د دغه سرای نه قافلې وباسه

اور د خاطر د زړه په خوند بل کړه
سترګې زما سترګو نه مړې وباسه

که دی دا زلفی په لاس راغلی اشنا بیا به څه کړي
که زه عادت د دی بلا سره شوم بیا به څه کړي

د رته کتی نه شم حیران یم دا اشنا سینګاره
تا می چی داسی په اشنا وکړل په ما به څه کړي

څو به بنیري او دا رتنه تل په ما کوي ته
چی پیر زو نه ده دعا هغه اشنا به څه کړي

چی څه یی کړل هغه یی تول وکړل په تا خاطره
وایه چی تا له په لاس راشی په اشنا به څه کړي

خوار ه تراخه شود خوږ و هسی نامه پاتی ده
د بدو شپی دي او د بنو هسی نامه پاتی ده

ته رانه هیری ی خدایه هر څه په دولت کومه
د دعاگانو د بنیرو هسی نامه پاتی ده

په سترګو ژاړو او په زړو کی سره خاندو اشنا
مه کړه ګیلی د ژړید و هسی نامه پاتی ده

په ډیره مینه کی چی زه او ته پری نه پوهیدو
د هغو ورځو او د شپو هسی نامه پاتی ده

چی په پلو کی بی ری په زړو نو باندی اور لګاو
د ستاد هغو اننګو هسی نامه پاتی ده

بابه وایی چی د خدای په خاطر راشه لږه
په ما خاطر کی د ژوندو هسی نامه پاتی ده

قسمته داسی دی ویده کړم چی بیدار نه شوم
به غیر له تا ستاد غمونو نه وزګار نه شوم

په دی دنیا کی به غیر ستا له ژونده څه ژوندون دی
لوبی م غور زیږم خویو ځل پکی خمار نه شوم

ستا په الفت کی هغه خوب چی می لیدلی اشنا
د رقیبانو د جګو ځنی و یزار نه شوم

ته چی راګوری په هغه وخت زه په طمع ومه
یو ځلی مو ړ د استاد خولی په بنه ګفتار نه شوم

هغه وعده چی ستا په سترګو کی وه ماته کړی
دا زه خاطر دی د وعدی په انتظار شوم

خود به ژړیږمه په سر و سترګو
تیروتمه ستا په لیونو سترګو

مه توروه تورې بلا سترګې دي
پام چې راته نه شي د پیرو سترګو

عمر لېږې کاروې د ژړا سره
وچې ګورې چاته په مخمو سترګو

بس کړ د خاطر سره پخلا شه ته
خلک ډیر عزت کړې د زړو سترګو

واخلمه تا اوکه دنیا واخلم
په خندا خه رنګه ژړا واخلم

لېږی دې پور ته کړه دمخ نه زلفی
لږه سوداچې په ربا واخلم

ته چې په سترګو کې موسکی شوی ګلی
زه دی ددی مینی بلا واخلم

مرګ او بیلتون دواړه جوړه راغلی
خاطره دا واخلم که دا واخلم

ته ما ستا یلې یو په سله نه یې
دا ته زما په وینا څله نه یې

څوک دا ځان ور ته ذرې ذرې کړي
خپله کوی ته د چا خپله نه یې

ته دا چېرته یې چې نه یې نه یې
هر وختې ما سره ته څله نه یې

خاطر به هم په تا اعتبار کوی لا
ته خو هم هغه بې څه بله نه یې

بیگاه ستا په انتظار می هسی تیره تو له شپه کړه
خندل راپوری ستورو، سپوږمۍ راته گیله کړه

ورته سر په زنګانه وم د وصال تکی ته غلی
ما به کله کله بنه کړه چی بیلتون راته قصه کړه

شوم په منډه نظر ستړی چی هر ستوری به جلب کړو
چی د استا په لوربه تللو هغه ستوری به مزه کړه

ورسره به یی زړه وچوی که شپه وچوی دخاطرنه
په ژړا ژړا ویده شوم چی وعده می ستا پوره کړه

رنګ ته مې ګوره سوی سکور نه یم
طاقت مې نه شته ستا د زور نه یم

راځه د ستر ګو نه مې مه یرېږه
سری په ژړا څه ماهی خور نه یم

دی اسویلو ته مې ته نه ګورې څه
سوی په زړه یم سوی نور نه یم

ستم کوه ته منع کړې چا یې
زه لا خاطر مرې د ګور نه یم

هر څوک مې د ښاره قرار ولوله راځي
پوهېږم ولې نه چې قتلولوله راځي

بلبل کړې د ګل وصف که بهار وي که خزان
بورا ته خوږې بس یو بنګلولوله راځي

غمونه د اشنا زه اوس په هیڅ نه هېروم
ای غمه د دنیا که هېرولو له راځي

ارمانه د اشنا شه د اشنا سره مېشته
چې زړه له د خاطر ازارولو له راځي

ښې خو ما ته هسې بله دنیا ښکاري
تا چې نه وینم نو ځله دنیا ښکاري

چې په هجر وصال نه پکې پوهیږم
دا د ستا ده کړمې ځپله دنیا ښکاري

تنګ ګوګل یوه دنیا شي چې ته راشې
بې تا تنګه د ګوګله دنیا ښکاري

هیڅ خاطر دې خزان ونکړه خاطره
شنګه ځره او بې ګله دنیا ښکاري

زما چې مدام د غه دلبر ته سترګې دي
نوري نه وینمه سترګې که هر چیرته سترګې دي

ته تل راته موسیږه په دی عمر مه شه جوړ
زما خوري ګلفامه دی پرهر ته سترګې دي

له هره دره وتلی سترګې می اشنا
که وږی دی که تږی خودی در ته سترګې دي

په اوښکو می کړه ستره وره ونه می د عشق
که ګل یی د مخ ریژي خو ثمر ته سترګې دي

د مینی سمندره سترګې غرقې می کړی تا
وتلی می له تا کله بهر ته سترګې دي

دا وچې خیژی بنه وه په وخت سترګه د سبا
زما خو هم ختلی دی سحر ته سترګې دي

خاطره که څو غواړې زړه له تا دیار دیدن
زه نه شم ورکتلی زما نمر ته سترګې دي

څه وکړم چې سترګې مې په تا باندې خوږې شوې
چا ته پورته نه شوې چې د استا په لور کږې شوې

وګوره ګریوان مې چې وحشت څه تار تار کړ لو
نه شلېږې د استاد زلفو څرنګه حلقې شوې

اوس خو ستا د مینې افسانه زما په شونډو ده
نورې افسانې مې په زړه ګوټي کې ورستې شوې

سترګې د خاطر خو ستا په سترګو تیر وتلې دي
ګورمه د ا بدي که زما په حق کې بنې شوې

چې دارو ګډېږي دلیمو په پیمانو شي
سود یې کله بیا دلب په بهانو شي

که داستا په نوم بد نام یم پروانه شته
لیونی غوږونه تل په لیونو شي

څو چې خدای راکړې نه وي لږ به ژاړم
دخیبر فصلونه تل په بارانو شي

چې دزړه کور له دې راشي پروانه شته
ای خاطره خاطر تل دمیلمنو شي

ترخوته مې زړه کېږي کله کله
په خوږ وخلك مړيږي کله کله

چې اشناد چانه ورک شي موندې نه شي
ورنه ځان پسې ورکيږي کله کله

په درد منو نظر روغوله پکار دي
که د لاسه دې څه کيږي کله کله

بنکاري يار مرور نه دې اې خاطره
چې ليمو کې دې مسيږي کله کله

لاخو دیار کور ته سفر پاتی دی
چی لز نظر می د بصر پاتی دی

زه او رخصت له تا په کومو ستر کو
لا می د تن د پاسه سر پاتی دی

زار دی د مینی دلمبو ځنی زړه
لا می په مینه کی ځیگر پاتی دی

ما خو د استا په سر وطن گنهد
خبر شه اوس را نه خیبر پاتی دی

د انتظار دیوی چی تمی نه شی
اوس خو شپه تیره شوه سحر پاتی دی

زه د دیبار په خوله رخصت ځنگه شم
د یار خاطر چی خبر پاتی دی

ما په شوگیر تا په خوبو تیره کړه
شپه مو سپوږمۍ ته په گیلو تیره کړه

بیگا رانه غلی شمع رویه اشنا
ما تو له شپه په ورید و تیره کړه

مینه دا ستا زما نور زړه سوزوي
هسې لمبه دی په ایرو تیره کړه

دا ما خاطر ستا دخاطره اشنا
د هجر شپه مې په سلگو تیره کړه

داسې راته ګورې لکه نه چې راته ګورې
نيغ مې د زړګي وزې کا زه چې راته ګورې

هغه وخت لرې ډېر واى تا چې مخ راځنې پټ کړو
داسې معلومېږي لکه بيا نه چې راته ګورې

ته زما د زړه او خپل بنايست نه تپوس وکړه
زه به درته څه وايمه ته چې راته ګورې

کله به د زلفو ورېځې لرې کړې امر مخه
شلېږي پلوشې بنايسته بانه چې راته ګورې

نن خو مې خاطر وکړه چې مه راته ګوره
زه درته کتې نه شمه ته چې راته ګورې

بیا به سره گورونن ځوانی ده درومه درومه
اوس څوک کړی دومره غم خودیوانی ده درومه درومه

اوس ته ایله راغلی چی بس وخت دځنګدن شو
بیا راته ګرانیږی اسانی ده درومه درومه

ویل یی چی بازار می دبنا یست ډیر ګرم شوی
هر شی یکی ختلی ده ګرانی ده درومه درومه

زه اوته خاطره نور په څه سره ښوا به یو
مینه خو هم داپښیمانی ده درومه درومه

خوشحالی ستا شوه زه یی نه اخلم
دا ستا غمونه واړه زه اخلم

تا می چی زړه وړ وگواه هم نه لرم
اوس به زه تا نه څنگه زړه اخلم

اول سپرغئ وم ستا دمینی داور
اوس په ځان پوه شوم چی لمبه اخلم

په وراندی ځم په روستوگورم اشنا
زه قدمونه چی واړه اخلم

ژوندی کله نه ماړه دي بې دخاورو
نه ماړه دی له ښاره دی بې دخاورو

چاچې خاورې ځان ګڼلی په جهان دی
هغه چرته کې اوده دی بې دخاورو

د انسان سره چې غم ګډ شو نو کلک شو
دیوال کېږي بې اوبو دی چا دخاورو

دخاطر رنګین غزل ته حیرانیږم
په دې خړ خیبر کې څه دی بې دخاورو

شاید چې حسن دې اشنا دسرو لمبو نه ډک دی
دزړه جهان مې دلوګو دا سویلو نه ډک دی

خوښه مې ستا په بڼو غشو ده ویشتنه دزړه
ګني وطن خو هسې یاره دا غزونه ډک دی

نمر مخې مخ ته مې له ورایه ناخبر کتلی
نن راته ځکه دا جهان دپلوشونه ډک دی

دا حسن تونه دا غمونه تنګ ګوګل زړګیه
له دې خوګوړ بنه دی هر څوکه له تیارونه ډک دی

زړه مې یوه دلیونتوب پکې سودا وکړله
بازار دحسن دې له ډیرو تماشونه ډک دی

همدمه مه رایادوه دا تیرې هیرې قصې
زما زړګې خو وختني لا دګیلو نه ډک دی

زما خاطر یې له شکونو له فکرونو ډک کړو
دمخ کتاب دې راله واړه دقصونه ډک دی

تک تورسوی دا ستا سوی اوربل دی
چې دی اورد ښکلی مخ ترې لاندې بل دی

چې څوځم په مخکې لا مزل زیاتیږي
اشنا ستا د دې منزل څنګه منزل دی

چې مې شک په کومه لار دی سودایی شوم
نورمې هیڅ موندلی نه دي خوستا پل دی

چې اشنا دې پکې اوسي ای خاطره
خیبر وګڼه حرم که څوشحال دی

عاشقان چی معشوقو په لور کاته که
خوتلی نه شی کم طاقته پریواته که

چی پلو د مخه لری کری رنا شی
لکه ستر گه د سبا چی راخاته که

لن می عکس د زره واخله که دی شک وی
چی دا نور بانه دی خرنگه ویشته که

په مین زره زنگند نه شی چی یار راشی
په هیبت زره په گوگل کی الواته که

د خاطر په زړگی داغ د بیلتون گوره
چی دیار په لور کا زه وانه کاته که

ښکلې مخ ته دې د موم په شان اوبه یم
لکه کاڼی هسې کلک ورته په زړه یم

چې په کومه لاره لاړ شې زه یې مل وم
لکه ګرد یې هسې خوړ په هر یو پله یم

زه په کومو سترګو ځان ته بیمار وایم
چې د ستا نوم اخستې شمه نو ښه یم

لږ د ځان سره په زړه کې فکر وکړه
زه خاطر دې چرې یو ځلې په زړه یم

گله دا ستا دخندید و شپې دي
زما داوبنکو دشيبو شپې دي

دا ستا ځوانۍ اودا وعدې مه کوه
دا ټولې شپې دپسرلو شپې دي

د بخت سپوږمۍ ته به راخيژي کله
اوس مې د ژوند دتربږمو شپې دي

دا زه خاطر دړنه تپوس کومه
دبیلتانه دي نوري څو شپې دي

زړه چې مې اشنا ستا د ړتلونه پاتې کیږي
خود به راته غم د خوشالونه پاتې کیږي

دا سپین دیوالونه به سباوې ټول ګواه
دغه تور لوګي چې د ډیوونه پاتې کیږي

پیکي مې زړه د لمن ورژیده لاړې
غم دې پکې د ډېرشو د نیوونه پاتې کیږي

باده د بیلتون چې په سترګو مې راند شي
سترګې مې د یار د تماشونه پاتې کیږي

زړه له مې مرهم دی سترګو له کجل
خاورې یې خاطره چې د ځپونه پاتې کیږي

نه ومه خبر زه تا چې زړه بايللی دی
تا ووې زيبا رته پس له دې به څوراځو

او بنا يه ځيګر راته ، اوس د زړګی سر راته
ما کتل رخسار ته ، پس له دې به څوراځو

ما چې کوم ستم کړی ، اوس مې په تاکم کړی
داد خواني وار په تا نن سبا راغلی دی

ښه ګر مرې در شم په حال دی نن خبر شم
لاس کې دې رقيب راته دک ټوپک نيولی دی

شو خاطر غلام د ستا ، کړی به احترام د ستا
پرې ی ن ده دربار ته ، پس له دې به څوراځو

چې د سترګو دې ښکار زنې زما سترګې
چې دې نشې کړې پوښتنې زما سترګې

زړه کچکول کړمه د اوښکو په زنځیر کې
چې درګوړم شې لیمنې زما سترګې

مرګ ژوند ونډې لې راګوړه د زړه سره
رانه غواړې جوړ، ښخنې زما سترګې

ستا د سترګو کړې خاطر چې نه درګوړې
هسې نه چې دې ړانې زما سترګې

نن خوړ راته مه وایه چې نا اوترسبا
سود مې ساقي نه شي په مینا اوترسبا

او وایه ربښتیا راته ته زما تعبیر نه یې
وې چې تل په خیال کې مې هغه ګصولې
بله راته ښکارې دا دنیا
سود مې ساقي نه شي په مینا اوترسبا

نن خودې راجمع په میو کې کیفونه کړل
سترګو پیمانو کې دې رنګ په رنګ ستونه
ګلې د خاطر شه په ربښتیا
سود مې ساقي نه شي په مینا اوترسبا

سترګې مې نیولې اشنا ستا په رخسار کې
اوبه اوبه شول تورې یې ځې په زمبار کې

ما چې لیدلی ستا د څپو پل دی
غم د وحشت را سره مــل دی
اوس مشغولا کړم په دغه لار کې
نه در رسیږې نه راته غبږ شي
نه را نه زب شي نه را نه تګ شي
دا څه ژوند ون دی په انتظار کې
یار مې د ښکلو سره روان دی
دې تماشې ته خاطر حیران دی
نکه سپوږمۍ وي ستورو قطار کې

شوګیری تولی په سباکی تیری شولی

پرین‌ده‌چی وژارم په چغو چغو

ته خواوس لاړی دبل چا شوې

زمادزړه ځنی جدا شوې

زمادعمرشوګیري دی تولی هیری شولی

دخدای دپاره بس لړ راشه

که مروریی راپخلا شه

ستادراتلوپه انتظارمی سترګی ستړی شولی

جانانه ستاسترګود پاره

وګوره ماته ښکلی یاره

خومره لمبی می په زړګوتی باندی تیری شولی

خاطره زه ځان ته حیران یمه

که لږ راګوری بس روان یمه

دپیغلتوب ملګری تولی درنه ګیری شولي

په تش دیدن باندې مې ورو ورو مشغولېږه
څه مه خفه کېږه بله ورځ به راشم

د هر چاپېره پته ستا یارانه کړم
تاله چې د رشم زه څه بهانه به کړم
په انتظار کې مې د ځان سره ژړېږه
څه مه خفه کېږه بله ورځ به راشم
نن به زما او د ستا ماهتابان شو سره
بل مې کاروان د ستور په کهکشان شو سره
د سبائې د خیال خوبونو کې زنګېږه
څه مه خفه کېږه بله ورځ به راشم
کړم داوعدې د رسره چې تا به هېر نه کړم
دا یوساعت به بې تا په نور څه تېر نه کړم
په دې سودا مې ویده کېږه راوېښېږه
څه مه خفه کېږه بله ورځ به راشم
ځان ته را تولې د دنیا خاطرې ما وګنه
پکې مې مخ او زلفې بېګاه سبا وګنه
د زړه په مېنه مې په سترګو کې ګرځېږه
څه مه خفه کېږه بله ورځ به راشم

د سبړ نه کال ته پر غمونه - د داسې ژوندانه مرگې ښه دی را دیشینه

اللہ دې خیر کړي

ستا د مما ښو فریادونه هېر به مې نه شي
لکه د زانو قطارونه هېر به مې نه شي

پاس په اسمان کې د جاڼو نو سره ځینه

اللہ دې خیر کړي

د فقیرانو لویه خدایه اخر به تیر شي
تیر خو به شي په لوږه تنده اخر به تیر شي

په مصیبت کې خو به یې څوک نه یادوینه

اللہ دې خیر کړي

خاطره هغه خلق ستایه په خپل کتاب کې
تل په بار بار یې داسې وایه په خپل کتاب کې

چا چې سرونه په وطن ورکړي دینه

اللہ دې خیر کړي

وراندې به مې داویل چې کاته به شی
اوس چې په ژوند پوه شوم وایم څه به شی

وایم ستا بنوته د رخمی زړه نـــــه
بس دی که وي داسې نو ساړه به شي

ستاد حسن شمع او دا شوق زمـــا
نه یې پریږ دی دواړه سره مړه به شی

نه ومه د داسې جدایی خـــبر
ماویل په ساعت کی تله راتله به شی

نن وکړه تپوس چې راځه څه غواړې
ماویل چې که راشې نو خوا ره به شی

هر وخت چې خندا کړې په ژړا زما
زړه خود خاطر اوبه اوبه به شی

نن دي اور بل په کوم پلو دی ــ بيا به سوزيږمه زه
اور راته بل دی
دژوند کاروان مې دی دغم خړوګرد ونوکې
واوره فرياد مې دجرس په آوازونو کې
تلې دی بل په کوم پلو دی
څوبه دهجراور دی شپې اوداتياري وينم
سبا دوصل به وی لرې که نژدې وينم
داستا منزل په کوم پلو دی
خاطره نن که دی سم راته کتلی وای
واره بنا يست به دی دزړه څنې وتلی وای
دکتو چل په کوم پلو دی

عادت په داسې تماشوګۍ نه یم
سپرلیه زه دې په غنچوګۍ نه یم

داستا بانه ستا د رخسار په خاطر
زه دې ګلونو په اغزوګۍ نه یم

که راکوې نو سم شراب راکــوه
زه دې ساقي هسې اوبوګۍ نه یم

اې خدایه بس ما خپله ورځ ولیده
د داسې ژوند په تیریدوګۍ نه یم

ته ما خاطر ته هسې ست خوکړه
چې خفه نه شې په درتلوګۍ نه یم

تیر به د استاد حسن وارشی یاره زما
اخر خزان به دی بهارشی یاره زما

چې نه رادرومی اشنانو وعدی څله کوی
هغه پرون دی څه وې چې نن لا بله کوی
زما یقین ستا په اقرارشی یاره زما

سترګې می بی له تا نه، د بل په لور نه ګوری
بغیر د ستا د مخه مخو نه نور نه ګوری
مرې به کله په دیدارشی یاره زما

زه د بل چا د مینې اشنا څه طمع نه کړم
زه به د استامینه چا سره سمه نه کړم
په ما خاطر دې نه اعتبارشی یاره زما




څه وکړم چې سترګې مې په تاباندې خوږې شوې
چاته پوره ته نه شوې چې د ستا په لور کږې شوې

وګوره ګريوان مې چې وحشت څه په تار تار کړلو
نه شليږې ستا د زلفو څرنګه حلقې شــوې

ما خو به ويل چې دا ستا خوله ډيره اسانه ده
ګرانه شوله ځکه د ومره خولې چې راپسې شوې

اوس خو ستا د مينې افسانه زما په شونډو ده
نورې افسانې مې په زړګوټي کې وروستې شوې

سترګې د خاطر خو ستا په سترګو تيروتلې دي
ګوره مه دا بدې که زما په حق کې بنې شــوې

